**الحمدُ للهِ معزِّ الإسلامِ بنصره، ومُذلِّ الشركِ بقهره، ومصرِّف الأمور بأمره، ومستدرجِ الكافرين بمكره، الذي قدَّر الأيام دولًا بعدله، وجعل العاقبةَ للمتقينَ بفضلِه، والصلاةُ والسلامُ على من أعلى اللهُ منارَ الإسلامِ بسيفه، قال الله تعالي : اعوذ بالله من الشيطان الرجيم  يخادعون الله والذين آمنوا وما يخدعون إلا أنفسهم وما يشعرون، أمَّا بعد:**

دحق او باطل مبارزه د ادم علیه السلام د زمانې څخه شروع او د قیامت پر ورځ به تمامیږي د همدې مبارزي لپاره هره زمانه کې د حق داعیان او مقاتلین هم موجود وي او تر څنګ یې د باطل داعیان او جنګیالي هم موجود وي، خو د حق پرستو د دعوت منهج او استدلال د الهي لاربښونو څخه وي او باطل پرست همیش د خپل عقل او خواهشاتو پر بناء خپل دعوت مخ پر وړاندې بوځي، او کوشش یې هم دا وي چې خلک په خپل دجل او فریب کارۍ د حق څخه لرې وساتي.

په همدې اساس نن عصر کې په قراني او نبوي منهج ولاړ نظام او شرعي نبوي سیاست کفار نشي برداشت کولی او ترې ویره لري، نو ځکه یې د دې لپاره مختلف باطل پرست په کار اچولي ترڅو حق دین او په نبوي منهج ولاړ شرعي نظام په مسلمانانو ګډوډ کړي ، د همدې هدف لپاره دوی بې شمیره داعیان، په ټولنیزه میډیا کې بې علمه خیاطان ، او د

امریکا د ډالريزو کڅوړو څخه علاوه په نور پټ ځانګړي فنډ فعال رسنيز ادرسونه په کار ګمارلي ، دوی ټول د خپل باطل د حق ثابتولو په برخه کې ډير پاتې راغلي ، لله الحمد په اسلامي دولت داسې خاص مدلل نيوکه يا هم کوم مستند انتقاد نه لري ، فقط په افواهاتو او خيالي تصوراتو او تکراري موضوعاتو شخوند وهي ، او برعکس بيا د اسلامي دولت د دعوت او اعلام د ډګر د اتلانو له لورې چې د دوی ددغه ماډل دوحه قراردادي نظام چې دوی يې خلکو ته د اسلامي نظام په حيث معرفي کوي هغه اصلي شکل او څېره ورځ تر بلې ليدونکو ، لوستونکو او اوريدونکو ته په ډير مدلل ، مفصل او مستند شکل په ويډيوي ، غږيز او کتبي ډول وړاندې کېږي، نو دې چارې طالب ملېشې له سختې ورخطايي سره مخ کړي او ولې به نه مخ کيږي چې لله الحمد له بل هر وخت زيات اوس د اسلامي دولت همدغه د حق غږ ته ډيری خلکو لبيک ويلی او آن تر دې چې د امارت په صف کې هم د دعوت او اعلام د زمرو د دعوت له اثره اضطراب ترسترګو کيږي ، نو د وطني امارت ټول تبليغاتي ماشين د اسلامي دولت د دعوت او اعلام  د ګوتو په شمير بې امکاناتو او د سختو فشارونو لاندې راګيرو مجاهدينو بې کاره کړی ، او

که هر څومره هڅه وکړي نو لله الحمد نه توانيږي چې د اسلامي دولت د دعوت د غازيانو ځواب ووايي، چې د نمونې په توګه په دې وروستيو کې د ملېشو ډيری د نړۍ د استخباراتو مهار شوي ادرسونه او مختلف افراد يي هڅه کوي چې خپل دا کفري نظام اسلامي ثابت کړي په همدې لړ کې مرتدو طالبانو تازه  يو ځل بيا دا دعوه کړي چې د امارت نظام په شرعي دلايلو ولاړ نظام دی او دې کې کفر خو لا څه چې منکراتو ته هم اجازه نشته! او د اسلامي  دولت د دعوت او اعلام د سنګر مجاهدين د دوی تکفير بې دليله کوي، که څه هم په همدغه موضوعاتو د اسلامي دولت د اعلام او دعوت د ډګر اتلانو ګڼ کتابونه ليکلي ، دورې موجودې دي او همدا راز مستندې ويډيوګانې هم شتون لري خو موږ به په دغه رساله کې په مختصر ډول دې پوښتنې ته ځواب ووايو چې آيا د طالبانو نظام اسلامي دی ؟

لکه څنګه مو چې په پيل کې يادونه وکړه چې  د ملېشو  استخباراتي ميډيا او نور رمبارزين يي دا دعوه کوي چې  اسلامي دولت دوی بغير د مکفره اعمالو څخه تکفيروي، خو داسې نه ده بلکې اولاً بايد ووايو چې د اسلامي دولت عقيده دا نه ده چې په غيره مکفره اعمالو دې مونږ څوک

تکفیر کړو او دا مونږ بار بار په خپلو کتابونو لکه ( زمونږ منهج او عقیده) کتاب کې په دې اړه پوره وضاحت کړی، چې په کبیره گناه مونږ څوک نه تکفیرو او صاحب د کبیرې گناه مسلمان فاسق گڼو، نو د امارت نظام ، چاروکې او افراد چې مونږ تکفیرو نو خامخا په دوی کې مکفره عقاید او اعمال موجود دي ځکه یې تکفیروو، د تفصیل لپاره تاسې د العزایم څخه نشر شوی کتاب د (د وطني امارت تور منهج) د ( طاغوت لښکر ) او په دې اړه نور گڼ کتابونه مطالعه کولاې شئ، خو که مخکې مو نه وي لوستلي، راشئ نن یې بیا درته د دوی نواقض مخ ته ږدو او انصاف او فیصله یې تاسې وکړئ البته دا تشې دعوې نه دي او نه کوم بې ثبوته او بې دلیله خبرې دي ، دا هر څه په عملي توگه ملېشو تطبیق کړي او خلک یې ویني په لنډه توگه باید ووایو چې په نړۍ کې دوه ډوله نظام موجود دی، یو د اسلام نظام دی او بل د کفر نظام، اوس که څوک د اسلامي نظام دعوه کوي نو معیار مونږ او تاسې سره شته چې قرآن او سنت دی، که د قرآن او سنت له مخې یو نظام اسلامي و، هغه به اسلامي وي او که یو نظام اسلامي نه و ،نو ښکاره ده چې هغه به د کفر نظام وي، طالب ملېشې که اوس دعوه کوي چې زمونږ نظام اسلامي دی، نو راځئ

چې د اسلام نظام او د ملېشو نظام سره پرتله کړو چې ترمنځ يې موافقت ډېر دی که مخالفت؟!

• که د عقيدې او منهج له لوري وګورو نو په اسلامي نظام کې به عقيده د توحيد او منهج به سپيڅلی نبوي منهج وي؛ خو د طالبانو نظام کې د توحيد پر ځای شرک ته ډېر ترويج کيږي، د تصوف او ديوبنديت په جامه کې وحدة الوجود، وحده الشهود، قبر پرستی او پير پرستی ته ښکاره بلنې شروع دي او ددغه عقائدو په بطلان د العزائم اداري ګڼ کتابونه ، رسالې ، مقالې ، دورې او مستندې ويډيوګانې خپرې کړې ،په دې اړه د لا زياتو مالوماتو لپاره د العزائم اداري ادرسونو ته ورشئ ، د مزاراتو او شرکي هډو د نړولو پر ځای پيسې ددې په آبادولو مصرفيږي، تاسې به يې په ډېر روښانه ډول بېلګې لېدلي وي، په دې وروستيو کې په کندهار کې د احمد شاه ابدالي د مور د زيارت جوړيدل او همدا ډول د ملا عمر د زيارت جوړول بيا ورته مستقل سرک جوړول او پرې يوه خاص دروازه لګول به يې وروستی بيلګې نه وي ، طالبان د مشرکانو او د هغوی د شرک د عبادتخانو ساتونکي دي لکه د هندوانو ګوردوارې او تکيه خانې او شرکي زيارتونه ساتي ، نو دا خو د شريعت د نصوصو څخه ثابته ده

چې حکم د ردء (یعنـي په ګناه باندې کومک کونکي) حکم د مباشر دی (یعني د ګناه کوونکي) دی، چې دا د جمهورو فقهاؤ قول هم دی،لکه شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله مجموع الفتاوی کې وایي: "والطَّائفة إذَا انتصرَ بعضُها ببعضِ، حتّى صارُوا ممتنعينَ، فهم مشتركونَ فِي الثَّوابِ والعقابِ...

ژباړه:"کله چې یوه ډله د بلې ډلې سره مرسته وکړي، تر دې چې دوی منع کونکي وګرځي (د الله د احکامو یا د حرامو منع کونکي) نو دوی په ثواب او سزا کې شریک وي."

نو خلاصه دا شوه چې اسلامي دولت چې امارت او د هغې چارواکي او افراد تکفیروي نو اول د کفر علت یې دا دی، چې دوی د عقیدې ازادۍ ته ژمن دي او عملاً یې دا کار کړی او نمونې یې روافض او هندوان وغیره ډلې دي ،چې دوی ازادي ورکړې دفاع او ساتنه یې کوي، او دا هغه کفر دی چې په ګریوان کې له سر ښکته کولو څخه بعد به هیڅ چارواکي او د موجوده نظام یو عسکر هم له دې څخه انکار ونکړي.

منهج او تګلاره پکې هم نبوي نه ده، بلکې ځينو برخو کې قومي تړې دي، ځينې ځايونو کې د کمونيزم او سيکولريزم تګلاره ده او ځينو ځايونو کې بيا د تير جمهوريت تګلاره عملي کيږي، او هيڅوک د طالبانو په نظام کې د بشپړ نبوي منهج د تطبيق بڼه مونږ ته نه شي ښودلی.

• د اسلامي نظام سياست بايد شرعي سياست وي، خو د طالبانو د نظام سياست په بشپړ ډول د شرعي سياست سره په ټکر کې دی، داخلي سياست يې پر ملي ګټو او ملي ارزښتونو څرخي او بهرنی سياست يې اقتصاد محوره دی، چې د پيسو د لاسته راوړلو او د خپلې ګدۍ د ساتلو په موخه د شرق او غرب له کافرو سره په موالات کې واقع شوي دي او پر ځای ددې چې د جهاد او قتال سياست له مخې د کفارو سره تعامل وشي د طالبانو نظام پر دې کار کوي چې څنګه د سيمې او نړۍ له طواغيتو سره يوځای جهاد چې نړۍ يې ترهګري بولي د نړۍ له مخ څخه ورک کړي او د مجاهدينو چې نړيوال يې ترهګر بولي پر ضد جګړه کې د نړۍ د لر او بر طواغيتو سره اوږه په اوږه ودريږي، تاسې به په دې اړه د ملېشو د مشرانو څرګندونې اوريدلې وي چې څنګه اوس جهاد ته ترهګري وآيي او مجاهدين د خپلو بادارانو په څېر د ترهګرو په نوم نوموي

او هر یو یې همدا خبره کوي چې دوی د کفارو سره د اقتصاد محوره سیاست پلویان دي ، د حربي کفارو سره قتال محوره سیاست په اقتصاد محوره سیاست بدل شو .

• په اسلامي نظام کې باید د امر بالمعروف او نهي عن المنکر برخه فعاله وي او دا باید نمایشي نه وي، چې تر ټولو لوی معروف توحید او تر ټولو ستر منکر شرک دی، خو د طالبانو په نظام کې دا برخه یوازې نمایشي او د خواهش تابع گرځول شوې ده، که د ملېشو پکې گټه وي، بیا سودي کاروبار، اختلاط، بې حجابي، او نور منکرات هر څه جایز دي،لکه تاسې په خپلو سترگو وینئ چې د ملېشو په نظام کې بانکي سودي نظام څه په درز کې روان دی آو دوی په خپله په دې اعتراف کوي چې د دوی بانکي نظام سودي دی او دا درې کاله یې وشو چې د دغه نظام د اسلامي کیدو باټې وهي خو همغه سودي نظام لا اوس هم دوام لري ، خپله یې له مشره تر کشره د بهرنیو سیلانیو او دیپلوماتو میرمنو او د نورو استخباراتي ارگانونو د راغلیو ښځینه میلمنو په ورین تندي او له خندا په ډکو خولو استقبال ،د دوی سره مجلسونه ، دوی سره اختلاط یې له هیچا پټ نه دی ، همدا راز چې د دوی په گټه ده نو

بتان او مجسمې هم پکې د تاريخي اثارو په نوم ساتل کيږي؛ دا چې د دوی په ګټه ده نو بيا حرامه ماليه هم حلاله وي ، بيا د کراچيوان څخه هم ماليه ټولوي،او که د دوی په تاوان وي او يا دوی ته دا نمايشي کړنې کومه تبليغاتي فايده رسوي نو بيا ورته  په شرعي حجاب کې هم  ستونزې ښکاري، د ښځو په خبرو باندې هم پابندي وي، يو عجيبه امر بالمعروف او عجيبه اسلامي نظام دی، چې د توحيد عقيده پکې د مصلحت لپاره پريښودل کيږي او د الله تعالی سره شرک پکې د مصلحت په بنياد ترسره کيږي. د مشرکينو مراسمو ته پکې آزادي وي او د هغې ساتنه د نظام مسؤليت ګڼل کيږي خو هغه مدارس چې د توحيد عقيده، قرآن او سنت پکې تدريسيږي پر هغوی بنديزونه لګوي او پر هغوی مستقيم او غير مستقيم فشارونه اچول کيږي چې له دغه کار څخه لاس په سر شي.

• په اسلامي نظام کې د فيصلې معيار قرآن او سنت دی، او شرعي حدود به پکې تطبيقيږي، خو د طالبانو نظام د ظاهر شاه قوانين تطبيقوي او نه يوازې چې شرعي حدود نه نافذوي ،بلکې د شرعي حدودو تغير هم کوي چې دا د جرم له پاسه بل جرم دی، د غل څخه د لاس قطع کولو په موخه د هغوی مخ ور توروي او يا يې په خره سپروي، د جادوګر د څټ

د وهلو، د واده کړي زناکار د سنګسارولو او د ناواده د دورو وهلو پرځای هغوی زندان ته اچوي او یا د شرعي حدودو پرځای خودساخته او د ملیشو د خواهش مطابق تعزیر ورکوي.

• په اسلامي نظام کې قلمرو او پوله هغه ساحه ده چې د کفارو سره د جنګ لومړی لیکه وي او دې لپاره هیڅ ټاکلی حد نشته؛ خو د طالبانو په نظام کې بیا د دوی قلمرو هغه فرضي او نامشروعه کرښې دي چې بریتانوي او فرانسوي طواغیتو او یا ملګرو ملتونو ټاکلي دي چې مرتد طالبان هم په بشپړ ډول یادو پولو ته ژمن دي او تر دې چې د یادو طاغوتي کرښو ساتنه پر ځان فرض بولي او که یې په دفاع کې ووژل شي ځانونه شهیدان ګڼي.

•طالبانو د دیموکراسۍ اصول منلي او عملي کړي دي لکه د عقیدې ازادي، ټول شمولیت او داسې نور... او د همدې اصل پر بنیاد یې روافضو، هندوانو او نور مشرکو جماعتونو او ډلو ته د عقیدوي مراسمو د اجراءکولو اجازه ورکړې او هم یې په خپل نظام کې روافض و غیره ځان سره ملګري او په مختلفو چوکیو مقرر کړي دي.

نو اولاً خو د دیمکراسۍ اصول منل ښکاره کفر دی ځکه چې د الله د دین په خلاف بل دین منل دي الله فرمايي: وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ. (آل عمران ٨٥)

ژباړه: او څوک چې د اسلام نه بل دین لټوي نو هیڅرې به ورڅخه قبول نکړای شي او هغه به په اخرت کې له تاوانیانو څخه وي.

دویم: روافض ښکاره مرتدین دي چې د ارتداد وجوهات یې نن سبا له هچا پټ نه دي، حتی چې خپله د امارت ځینو شیخانو او ملایانو هم ورباندې د ارتداد فتوی ورکړې ،خو سره له دې یې هم په خپل نظام کې ملګري کړي او مختلفې چوکۍ یې ورکړې نو مرتد پریښودل او په خپل ارتداد د باقي پاتې کیدو اجازه ورکول او حتی دفاع یې کول دیته کوم نوم ورکوئ؟! ایا همدغه د روافضو مراکزو کې شرکیات نه کیږي؟ صحابه و ته ښکنځل نه کیږي؟ عائشې رضي الله عنها ته پکې ښکنځل نه کیږي؟ قران ناقص نه ګڼل کیږي؟

د دې تر څنګ همدا روافض رافضیت ته دعوت نه کوي؟! زیات اهل السنت عوام دوی په افغانستان کې رافضیت ته وانه ړول؟!

نو د دې کفرياتو دفاع کول، او په مخکې يې سپر په خير ودريدل چې څوک ورته ضرر ونه رسوي، او د کفر داعيانو ته د بقا اجازت ورکول دا کفر نه دی؟!

نو که د امريکا د ډالرو زور نه وي نو خامخا به اقرار کوئ چې دا کفر دی! که يې ونکړئ نو نور مسلمانان بيا ستاسې په خير نه دي چې په هر کفر دې چشم پوشي کوي او کفر ته دې تاويلونه کوي!

دليل : الله عزوجل د کفارو او مشرکينو څخه برائت کول د ايمان لپاره شرط گرځولی او بغير له برائت څخه ايمان نه صحيح کيږي.

الله تعالی فرمايي: وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالنَّبِيِّ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَآءَ وَلَٰكِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ فَٰسِقُونَ [سُورَةُ المَائدة : 81]

ژباړه: که په رښتيا سره دا خلك د الله، پيغمبر او هغه څه منوونکي وای چې پر پيغمبر نازل شوي ول؛ نو هيڅکله به يې د مؤمنانو په مقابله کښې کافران خپل دوستان نه نيول؛ مگر له هغوی څخه زياتره خلك د الله له اطاعت څخه وتلي دي.

پورته ایات دلیل دی چې براءت د کفارو څخه شرط دی د ایمان د صحت لپاره، او دا اجماعي مسئله ده، په الدرر السنية»: (١١/ ٥٤٥) کې قول د علامه عبد الله بن حسن رحمه الله نقل کړی چې هغه وایي:

أجمع العلماء سلفًا وخلفًا من الصحابة، والتابعين، والأئمة، وجميع أهل السنَّة، أن المرء لا يكون مسلمًا، إلاَّ بالتجرُّد من الشرك الأكبر، والبراءة منه وممن فعله، وبغضهم ومعاداتهم بحسب الطاقة والقدرة، وإخلاص الأعمال كلها لله، كما في حديث معاذ الذي في الصحيحين: «فإنَّ حقَّ الله على العباد أن يعبدوه ولا يشركوا به شيئًا»

ژباړه: علماء، سلف او خلف، د صحابه، تابعیین، امامان، او ټول اهل سنّت په دې اتفاق لري چې انسان مسلمان نشی کیدای مگر په ځان پاک ساتلو له لوی شرک څخه ، او د دې سره بیزاري وکړي د هغه نه او له هغه چا نه چې شرک کوي ، او د خپلې وسې په اندازه بغض او دښمني وکړي هغوی سره ، او ټول اعمال د الله لپاره خالص کړي، لکه څنګه چې په حدیث د معاذ رضی الله عنه کې په صحیحینو کې راغلي دي:

«د الله حق پر بندګانو دا دی چې د هغه عبادت وکړي او ورسره هیڅ شی شریک نه کړي.

• طالبانو په خپل حکومت کې زاړه مرتدین او مشرکین بې له استتابې ملګري کړي دي او د اسلامي دولت په خلاف ترې په نظامي او اداري چارو کې کومک اخلي، چې دا يې هم د کفارو او مرتدينو سره د موالات ښکاره بیلګه ده، ځکه چې د دولت اسلامي مجاهدین لله الحمد مسلمانان دي او دوی هم ورته د مسلمانانو په نظر قایل دي نو د کفارو او مرتدینو څخه د مسلمان مقابل کې مرسته اخیستل او یا ورسره په یو صف کې د مسلمانانو مقابله کول او وینه یې حلاله ګڼل دا هم ښکاره کفر دی چې زیات نصوص د شریعت وربادي دلیل دي.

دلیل: وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظَّٰلِمِينَ[سُورَةُ المَائدة : 51]

ژباړه: او که ستاسي څخه څوك هغوی خپل ملګري نیسي، نو بیا هغه هم په هماغو کښې شمېرل کیږي. په دي کښي شك نشته چي الله ظالمان له خپلي لارښووني څخه بې برخي کوي.

• طالبان د ټولو اسلام ته منسوبو مرتدو هیوادونو سره چې دیموکراسي په کې حاکمه ده د دوستۍ او د ورورۍ خطاب ورته کوي او ورسره د مثبت تعامل غوښتونکي دي لکه ترکیه، پاکستان ، قطر  او نور هیوادونه یې نمونه ده چې اردغان او شهباز شریف ته یې په انتخاباتو کې د کامیابۍ مبارکۍ ورکړې  او له هغوی څخه برائت نه کوي. چې دا د مرتدینو په کفر په رضائیت دلالت کوي او د امت اجماع ده چې په کفر راضي کیدل کفر دی.

حدیث کې نقل دي :

عَنِ الْعُرْسِ ابْنِ عَمِيرَةَ الْكِنْدِيِّ ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، قَالَ : " إِذَا عُمِلَتِ الْخَطِيئَةُ فِي الْأَرْضِ كَانَ مَنْ شَهِدَهَا فَكَرِهَهَا ، وَقَالَ : مَرَّةً أَنْكَرَهَا كَانَ كَمَنْ غَابَ عَنْهَا وَمَنْ غَابَ عَنْهَا فَرَضِيَهَا كَانَ كَمَنْ شَهِدَهَا " ."أخرجه أبو داود.

ژباړه:د عُرْسِ ابْنِ عَمِيرَةَ الْكِنْدِيِّ څخه روایت دی هغه یې د نبي صلی الله علیه وسلم څخه نقل کوي چې هغه وویل: "کله چې یوه ګناه په ځمکه کې وشي، که څوک هغې ته حاضر وي او له هغې څخه کرکه

وکړي، او يوځل يې وويل چې هغه باندي انکار وکړي،  نو د هغه حالت د دې په خير دی چې ګناه يې نه ده ليدلې او که څوک له هغې نه غايب وي پس په هغې سره راضي وي، نو د هغه حالت د دې په خير دی چې ګناه ته حاضر شوی دی.

د حديث څخه معلومه شوه چې په يو عمل رضا داسې حکم لري چې هغه عمل دې شخص خپله کړی وي.

او په بل روايت کې دي:  "سيكون بعدي أمراء تعرفون وتنكرون، فمن أنكر فقد برئ، ومن كره فقد سلم، ولكن من رضي وتابع هلك". رواه مسلم.

ژباړه "پس له ما وروسته به يو شمېر اميران وي چې تاسو به يې پېژنئ او انکار به يې کوئ، هر چا چې انکار وکړ نو هغه بري شو ، او هر څوک چې له هغې څخه کرکه وکړي، هغه به سالم وي؛ مګر هر څوک چې راضي شي (په هغه اميرانو) او ورپسې شول  هلاک به شي."

شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله وايې: فإنَّ منَ الرِّضا ما هو كفر؛ كرضا الكفار بالشِّرك، وقتْل الأنبياء، وتكذيبهم، ورضاهم بما يسخطه الله

ويكرهه؛ قال - تعالى -: {ذَلِكَ بِأَنَّهُمُ اتَّبَعُوا مَا أَسْخَطَ اللَّهَ وَكَرِهُوا رِضْوَانَهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ} [محمد: 28]

ژباړه: "يقيناً ځينې رضاګانې کفر دي؛ لکه د کافرانو رضا په شرک، او د انبياؤ قتل او د هغوی په تکذيب ، او هغه څه باندې رضا چې اللهورباندې غصه کيږي او بد يې ګڼي ؛ الله تعالى فرمائي: {دا ځکه چې هغوی د هغه څه تابعداري وکړه چې الله پرې غوسه کيږي او د هغه رضا يې بده وګڼله، نو د هغوی اعمال يې برباد کړل .

نو خلاصه دا شوه چې امارت نن سبا په جمهوري دولتونو او د هغوی په حاکمانو راضي دی مبارکياني ورکوي نو د دوی هم هماغه حکم دی، او دا يې هم يو ښکاره کفر دی چې انکار ورڅخه کول د ځمکې او اسمان څخه انکار کول دي!

• دکفارو سره دمسلمانانو مقابل کی تعاون اتفاقي  کفر دی ، خو په دې اړه به تاسې د العزائم اداري مستندې ويديوګانې کتلې وي چې هم د طالب ملېشو مشران او هم د روسيې ، ايران ، امريکا ، او چين په شمول ټولو حربي کفار په واز کومې دا اقرار او اعتراف کوي او وايي چې ملېشې

د ترهګرۍ ( اسلامي دولت ) په خلاف د دوی په آیتلاف کې شامل دي ، دوی یی وخت په وخت ستاینې کوي او پریمانه ډالریزي او نورې هر اړخیزې مرستې ورسره کوي .










د طالبانو لپاره د چین نوي ټاکل شوي سفیر ژیو چینګ پخپلې ایکس پاڼه لیکلي، د طالبانو رژیم په بریالیتوب د داعش او هغه نور خطرونه راکم کړي، چې د سیمې هېوادونو او چین ته ګواښ وو، نو له همدې امله موږ ورسره نږدې سیاسي او اقتصادي اړیکې غواړو: «چین له طالبانو پوره ډاډ لري. طالبان د سیمه ییزو خطرونو د ختمولو وړتیا لري.»

Translate post




















داسلامی دولت په تمکين کی هرعام اوخاص مشاهده کړه ، چی دوی د کفارو سره داسلامی دولت مقابل کی تحالف وکړ او د هغوی سره یوځای یې په اسلامی دولت حمله وکړه، تمکين یی ختم کړ نافذ حدود یی معطل کړل انصار او مهاجرين يې شهيدان کړل چې پاتې شول هغه یی دکفارو په لاسونو اسيران کړل او تر ننه نړی ته همدا ډاډ ورکوي، چی مونږ داعش ختم کړی او يو نيم چې پاتي دی دا هم ختموو او فعلاً هم په دې کی بوخت دي، نو دا عمل هم صريح کفر دی، او دليل د کفر د دي عمل همدا دی چې: الله فرمايي: أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ نَافَقُوا يَقُولُونَ لِإِخْوَٰنِهِمُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَٰبِ لَئِنْ أُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ وَلَا

نُطِيعُ فِيكُمْ أَحَدًا أَبَدًا وَإِن قُوتِلْتُمْ لَنَنصُرَنَّكُمْ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ[سُورَةُ الحَشر : 11]

ژباړه: ته هغو کسانو ته نه ګورې چي د منافقت کړنلاره یې غوره کړېده؟ - دوی خپلو کافرو اهل کتابو وروڼو ته وایي: "که تاسې وویستل شوئ، نو موږ به هم ستاسې سره ووځو؛ او ستاسې په باب به موږ د هیچا خبره هیڅکله ونه منو؛ او که ستاسې سره جنګ وکړای شو، نو موږ به ستاسې مرسته وکړو." - خو الله شاهد دی چې دغه خلك ډېر  درواغجنان دي.

(استدلال) د مدینی منافقانو بنونضیرو ته د درواغو وعدې ورکړې، چی مونږه ستاسو مرسته کوو که مسلمانانو په تاسې حمله وکړه ، نو الله رب العالمین دوی ته منافقان او د یهودو ورونه وویل، نو چی نن طالبان په ښکاره، چین،  روس، امریکا او نورو کفارو سره داسلامي دولت په مقابل کی د ملګرتیا ډاډ ورکوي او اسلامی دولت مشترک دښمن ګڼي، دا به څنګه نه مرتد کیږي دا تعاون دوی د اسلامی دولت په مقابل کی نه یوازی د اصلی کفارو سره بلکه د روافضو او نورو مرتدو دولتونو سره هم دی .

دویم دلیل: په سورة محمد۲۵ او ۲٦ ایاتونو کی الله تعالی فرمايي:

إِنَّ الَّذِينَ ارْتَدُّوا عَلَىٰ أَدْبَارِهِم مِّن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَى ۙ الشَّيْطَانُ سَوَّلَ لَهُمْ وَأَمْلَىٰ لَهُمْ [25] ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لِلَّذِينَ كَرِهُوا مَا نَزَّلَ اللَّهُ سَنُطِيعُكُمْ فِي بَعْضِ الْأَمْرِ ۖ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِسْرَارَهُمْ.

ژباړه: حقیقت دا دی کوم کسان چي د هدایت له روښانه کېدو څخه وروسته په شا وګرځېدل، د هغو لپاره شیطان دغه کړنلاره اسانه کړېده او د درواغجنو هیلو لړی یې د هغو لپاره اوږده کړېده.

له همدې امله دوی د الله د نازل کړي دین بد ګڼونکو ته وویل چي په ځینو چارو کښې به موږ ستاسې (حُکم) منو، الله د دوی په دغو پټو خبرو ښه پوهیږي.

ددی آیاتونو خلاصه مقصد او معنا همدا ده چی الله رب العالمین هغه چاته مرتد ویلي دي، چې هغوی د هغه چا چې هغوی درب رالیږلی شریعت بدګڼي او دوی د هغوی طاعت ته صرف په خوله منلو ته تیارشي، چې لا یې عملي کړی هم نه وي، نو اوس دي لوستونکي وګوري، دغه موجوده کفري دولتونه او مرتد دولتونه درب رالیږلي شریعت سره محبت

کوي قدر يې کوي احترام يې کوي اوکه نه بد يې ګڼي کرکه ترې کوي او مخه يې نيسي او نافذونکي يې قتلوي خو طالبانو نن په عملي او فعلي توګه باندی داسلامی دولت دموحدينو حقيقی مسلمانانو مجاهدينو په مقابل کی ددی کفري دولتونو طاعت او ملګرتيا شروع کړې نو دوی به مرتد نه شي ګڼل کيدای؟

دا مو مشت نمونه خروار هغه توپيرونه او ښکاره ټکرونه ذکر کړل چې د طالبانو نظام يې د اسلامي نظام سره لري، ځکه که ټول ذکر کوو نو دا رساله به ډيره اوږده شي ، بيا ، نو پورته نقطو ته په کتو ويلای شو چې د طالبانو نظام اسلامي نه دی؛ البته که د دوی هدف امريکايي اسلام وي، نو بيا بلکل دا په دوحه کې ډيزاين شوی جديد اسلامي نظام دی چې د امريکا په شمول د نړۍ له ټولو کافرو سره ښې اړيکې غواړي او پر وړ اندې يې جهاد ترهګري بولي او د امنيت خونديتوب يې خپل يو ماموريت ګڼي او ددې جديد اسلامي نظام يواځيني دښمنان د توحيد د بيرغ پورته کوونکي د اسلامي دولت مجاهدين دي چې دا د طالبانو نظام به يې د لمنځه وړلو لپاره ټولې ممکنه لارې په کار اچوي؛ اګر که

د سیمې او نړۍ د طواغیتو سره موالات، همغږي، همکاري او تعاون هم وي.

دا مو د طالبانو د نظام باره کې خبره وکړه، که چیرې دوی خپل نظام اسلامي بولي نو د پورتنیو ګڼو وجوهاتو له مخې د دوی نظام اسلامي نه دی، البته دوی د اسلام، سیکولریزم، جمهوریت، دیموکراسۍ، کمونیزم، ایراني اخوندیزم او ظاهرشاهي دیکتاتوریزم څخه یو ګډوله او اچار جوړ کړی دی چې په بشپړ ډول یو کفري نظام دی او د جاهلیت د تور منهج پیروي پکې کیږي.

خو د مرتدو طالبانو په اړه روڼ حقیقت دا دی چې دوی له هر څه وړاندې مرتد او له اسلام څخه وتلي دي او د نظام په اړه د دوی دا دعوه چې کفري دی که اسلامي دا خو بیخي وروستۍ خبرې دي، دوی ته پکار ده چې دوی له ټولو هغو نواقضو توبه وباسي چې دمګړۍ پکې دوی ښکېل دي او بیا وروسته د نظام پر نوعیت وغږیږي، ځکه که دوی له یادو نواقضو توبه ونه باسي نو د دوی هیڅ عمل د الله په نزد قبول نه دی، اګر که بالفرض والتقدیر دوی چیرته بشپړ اسلامي نظام هم قائم

کړي سره ددې چې قیامت به راشي خو دوی به اسلامي نظام قائم نه شي کړای.

په مرتدو طالبانو کې نور ځینې مهم او مشهور اسلام ماتونکي:

- مرتد طالبان د وحدة الوجود، وحدة الشهود او قبرپرستۍ عقیده لري، دې باره کې د دوی د مشرانو لکه نداء محمد، دین محمد او نورو بیانات او خبرې انټرنت کې شته.
- مرتد طالبان د ملګرو ملتونو طاغوت مني، قوانینو ته یې ژمن دي او ترې رسمیت غواړي. او په دې سره مرتد طالبان د کلمې طیبې لومړی جزء (لا إله) چې له طواغیتو انکار دی نه مني، بلکې هم طواغیت خوشالوي او هم د الله د بنده ګۍ نمایش کوي.
- مرتد طالبان شرعي حدود نه تطبیقوي او په نورو خودساخته سزاګانو سره شرعي حدود تغیروي. ﴿اَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُوْنَ ؕ وَ مَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ۝۵۰﴾ سُوْرَةُ الْمَآئِدَة

ژباړه: (که دوی د خدای له قانون څخه مخ اړوي) نو ایا بیا د جاهلیت فیصله غواړي ؟ په داسې حال کښې کوم خلك چې پر الله باور لري د هغو په نزد له الله نه بل غوره فیصله کوونکی هیڅ نشته .

وقال تعالی: وَ مَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ﴿۴۴﴾ سُوْرَةُ الْمَآئِدَة

کوم خلك چې د الله له نازل کړي قانون سره سمې فیصلې ونه کړي هماغوی کافران دي.

• مرتد طالبان طائفه ممتنعه ده، په زوره یې د شریعت د تطبیق څخه ځان بند کړی دی ، تاسې فکر وکړئ د ابوبکر الصدیق رضی الله عنه په وخت کې صحابه وو د زکات د مانعینو په ارتداد اجماع کړې وه نو د هغوی به اوس څه حکم وي چې ټول شریعت نه تطبیقوي او د عدم تطبیق لپاره یې بهانې لټوي.

• مرتد طالبان د وطنیت طاغوت علمبرداران دي او ټوله جگړه، مبارزه او کوښښ یې وطنیت دی او د همدې وطنیت پر سر ولاء او براء کوي.

• مرتد طالبان د دیموکراسۍ او سیکولریزم اساسات لکه وطنیت، ولسواکي، عقیدې آزادي او نور مني، نو د دیمکراسۍ اصول منل ښکاره

کفر دی ځکه چې د الله د دین په خلاف بل دین منل دي الله فرمایي:

وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ.

(آل عمران ۸۵)

ژباړه: او څوک چې د اسلام نه بل دین لټوي نو هیچرې به ورڅخه قبول نکړای شي او هغه به په اخرت کې له تاوانیانو څخه وي.

- مرتدو طالبانو د شرعي، قرآني او الهي قوانینو پرځای د مرتد ظاهر شاه وضعي قوانین په هیواد کې نافذه قوانین ګرځولي دي.
- مرتد طالبان نړیوالو طواغیتو ته لکه د جرمونو نړیواله محکمه، ویانا کنوانسیون، امنیت شورا، ملګري ملتونه او نورو ته فیصلې وړي او ګڼ شمېر قضیې د همدغه طاغوتي اصولو په رڼا کې حل او فصل کوي.

دا د اسلام هغه ماتونکي دي چې په ټول امت کې پرې دوه کسان هم اختلاف نه لري او دا ټول بلکې ددې سربېره نور ګڼ نواقض په مرتدو طالبانو کې شتون لري، چې دې ټولو ته په کتو یو ځل بیا ددې تاکید کوو چې طالبان د اسلام له دائرې څخه وتلي دي او نظام یې هم اسلامي نه دی؛ بلکې مرتدو طالبانو هم په هیواد کې یو داسې نظام

قائم کړی چې مرجع او مأخذ يې د قرآن او سنت پرځای نړيوال جاهلي نظم دی.

نو د دوی دا خبره چې په وطني امارت کې کفر خو لا څه کوي منکراتو لپاره هم ځای نشته په بشپړ ډول باطله ده او نور خلک خو لا څه خپله طالب جنګياليي هم ورسره دا خبره نه مني او خپله پرې رشخند وهي، مونږ يوازې يو څو مختصرې هغه نقطې ذکر کړې چې ماډرن وطني امارت دا ياد شوي کارونه په ښکاره او ډاګيز ډول کوي او دوی پرې خپله شاهد دي او يادې ټولې کړنې اسلام ماتوي او که هر څوک يې مرتکب شي د اسلام له دائرې څخه خارجيږي او مرتد ګرځي.

اوس دا جلا خبره ده چې مرتد طالبان دا کفري کړنې د سیاسي، وطني، شخصي، ملي او یا نورو مصلحتونه لـه وجې کوي او که یې عـقیدتا کوي، کـه یې له هرې وجې کوي حکم یې تغیر نه کوي؛ ځکه مسلمان باید پـه دې پـوه شي چې تـر ټولو ستر مصلحت تـوحید او تر ټولو ستر ظلم، فساد او رذالـت شرک دی، نـو هر هغه مصلـحت چې د توحید ماتېدو او د شرک د دروازې کولاویدو ته لاره هواروي هغه مصلـحت بایـد شاتـه وغـورځول شي او د خپل ایـمان او عقیـدې حفاظت ته باید لومړیتوب ورکړل شي؛ اگر که په دې لاره کې مال، اولاد، ځان او هــر څــه لمنځه ځي او ښارونـه ویجاړیږي.

